رضی اللہ عنہم ورضوا عنہ

# شانِ صحابہ رضؓ

من افادات

امام الانقلاب شیخ القرآن
والحدیث مولانا محمد طیب طاہری صاحب مدظلہ العالی

خوشہ چینی

عبدالرحیم شاہ

اشاعۃ التوحید والسنۃ

# شان صحابه رضی الله عنهم

په دې سورة (آلعمران) کښې یواهم مضمون شان صحابه بیان شو. یوکال دلته سفروو، دغرمې وخت وو، یوبوډاسړې راغلو، شیخ القران رحمة الله علیه سره کیناستو، تپوسونه ئې شروع کړو. خبرې ئې کولې، شیخ رحمة الله علیه ورته وائی چه زه مفتی محمودا ستاذیم، اوزه دډیره اسماعیل خان یم، اوفی الحال مفتی محمودصاحب نه راغلم (مفتی محمودصاحب هغه وخت کښې وزیروو) ماپه ډی ائی خان کښې دشیعه ؤ رَدکولو. نوهغوی زماجواب نه شوکولې. نواوس هلته جماعت اسلامی والاپیداشو او دشیعه ؤ مرسته ئې شروع کړه. نوهغوی مضبوط شو، اوس ماته وائی چه ته کوم عظمت صحابه دپاره قربانی کوې، که دادومره اهم مسئله وی نوقران کښې وښایه، نوزه سوچ کښې وم، دې وخت کښې یوعالم دسندهـ، مولانا صدیق ولی اللهی، هغه ماسره ملاؤشواودادعبدالله سندهی رحمة الله علیه شاګرد دې، اوسل کاله عمرئې دې. نوهغه ماته اووې، چه پنج پیرته لاړشه، هلته به ستامسئله حل شی، اوس تاته راغلې یم، شیخ رحمة الله علیه ورته اووې. ښه ده کنه نوماته (ابوالیمان مدظله) ئې اووې، چه قران راواخله. نوماقران راوخستواوورم مې کړونو.

## عظمة الصحابه من القران

شیخ القران رحمة الله علیه ورته اووئیل. چه که صحابه ؤجرم دی نودې نه لوئې جرم بل نه شی کیدې چه نبی علیه السلام ئې توروميدان کښې پریښودې ده. اوهغوی ترې تښتیدلی دی. سره ددې چه داکارشوې ده، اودې سورة العمران کښې هغه واقعه بیان شوې ده. نوګوره الله تعالی څه وائی، اول العمران نمبر ۱۵۲ ولقد عفاعنکم، زماپه خپل ذات باندې قسم وی ماستاسونه عفاکړې ده).

د عفوڅه معنی ده؟ دانه چه ګناه وه الله معاف کړه، بلکه الله وائی چه ستاسوګناه ته ماړوګناه نه ده وئیلې. دعفوې څه معنی المسامره دابن

الهمام صفحه ۲۳۳ کښې معنی کوی. قال القشیری ولیس العفوهنا بمعنی غفوبل کماقال النبی ﷺ: عفاالله عنکم عن صدقة الخیل والرقیق. ای لم تجب علیکم قط ولم یلزمکم. نومعنی ددې دانه ده چه ګناه ترې شوې وه بلکه داشکل دګناه وولکه کله کله شکل دګناه وی. لکه روژه دارسړې روژه کښې اوبه وڅکی، دویم ځل ایت ۵۵ ولقدعفاالله عنهم تحقیق الله ترې نه عفاکړې ده. دریم ځل ۱۵۹ پیغمبرپاک ﷺ ته وائی فاعف عنهم څلورم واستغفرلهم الله پنځم وشاورهم فی الامر، بیاایت نمبر ۱۷۴ واتبعورضوان الله دوی هم تابع دی دالله رضامنتیا. دارنګه نمبر ۱۱۰ کنتم خیرامة تاسوغوره امت یئ. په دې وخت کښې مخاطبین صحابه وو. نوچه هغوی خیانت ګراوظالمان شونوغوره څنګه شو. دارنګه بقره نمبر ۱۴۳ امةً وسطاً. ټولګئ درمیانه، اې خیاراً وعدولاً، الله وائی دوی غوره دی، دارنګه سورة فتح نمبر ۱۸ لقدرضی الله عن المؤمنین. الله وائی زه ترې راضی یم، خودوی :(الشیعة واحبابهم) وائی چه مونږترې رضانه یو. دارنګه فتح ۳۲ والزمهم کلمة التقوی، دوی سره ماکلمة التقوی لازمه کړې ده. اوبل ځائې حجرات کښې الله وائی ان اکرمکم عندالله اتقاکم، نوصحابه ټول عزتمنددی.

دارنګه توبة ۱۰۰ رضی الله عنهم ورضوا عنه.دارنګه واقعه نمبر ۱۰ ,, والسابقون الخ.دارنګه انفال ۶۴ والف بین قلوبهم ورپسې وائی یاایهاالنبی حسبک الله الخ. دارنګه حشر ۸، ۹ الله وائی زه ترینه رضایم. پیغمبره! ته هم ترې راضی شه. اودوی ماغوره، انصاف دار، عادلان، کامیاب خلق، اوزړونوکښې مې ئې ایمان لازم کړې ده، ددی نه نور زیات څه شان صحابه وی. دارنګه احادیث وګوره حدیث کښې راځی.

## عظمة الصحابه من الاحادیث النبویة

(۱) ابوسعید خدری رضی الله عنه نه روایت دې نبی علیه السلام فرمائی. لا تسبوا اصحابی فوالذی نفسی بیده لوانفق احدکم مثل احدذهباماادرک مداحدهم ولانصفه.

(۲) دارنگه ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دی نبی ﷺ فرمائی مهااوتیتم من کتاب الله والعمل به لاعذرلاحدکم فی ترکه، فان لم یکن فی کتاب الله فسنة منی ماضیة فان لم یکن سنة منی ماضیة فماقال اصحابی، ان اصحابی بمنزله النجوم فی السماء تشبیه ئې ستوروسره ورکړه، کلاوالقمر، نبی سپوږمۍ وو. او سپوږمۍ نه بعدستوری رڼاکوی.

(۳) دارنگه عمربن الخطاب نه روایت دی العواصم من القواصم کښې ابن عربی اوله مقدمه اول باب کښې چه هغه اصحاب رسول الله ﷺ عدول بتعدیل الله ورسوله لهم ولاینتقص احداً منهم الازندیق، نوهغه روایت کښې راځی قال رسول الله صلی الله علیه وسلم سالت ربی فیمااختلف فیه اصحابی من بعدی فاوحی الله الی فقال ان اصحابک عندی بمنزله النجوم من السماء بعضها اضوء من بعض.

(۴) دارنگه انس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دی:

قال رسول الله ﷺ ان الله اختارنی واختارلی، اصحابی، فجعلهم اصهااصهاری وجعلهم انصاری وانه سیجی فی اخرالزمان قوم ینتقصونهم الاولاتناکحوهم الاولاتنکحوالیهم الاولاتصلوا معهم الاولاتصلواعلیهم

(۵) دارنگه دامام ابوذرعه رضی الله عنه قول دې. اذاریت الرجل ینتقص احداً من اصحاب رسول الله فاعلم انه زندیق.

دارنگه ابوداؤدیوحدیث راوړی په باب الرجم کښې چه صحابه په لارروان وو. یوصحابی رجم شوې وو. دهغه تذکره ئې کوله فقال ارجم رجم الکلب. نبی واؤریده. غږئې ونه کړو، حتی مربجیفة حمارشائل برجله. نونبی ﷺ اووې این فلان وفلان، قالا نحن ذان یارسول الله ﷺ قال ﷺ: انزلافکلامن جیفة هذاالحمار(نوصحابه پوهه شو چه حضرت غصه دې، تپوس کوی، قالا من یاکل من هذایارسول الله، قال ﷺ، فمانلتمامن عرض اخیکما آنفاً اشد من الاکل منه. هغه صحابه ؤدهغه مرجوم صحابی څهٔ بې عزتی کړې وه؟

خو صرف دائې ډېر چه رجم شوې ده. او دائې ربښتیاوې، خوپه نبی ﷺ بداولګیدو او نبی ﷺ اووې. والذی نفسی بیده انه الان فی انهار الجنة ینغمس فیها. دوی وائی چه صحابه ؤداکړی دی، مونږ وایو بالفرض که شوې دی، اوته غائبانه دهغه بدوائې، داداسې ده لکه مردار خره غوښې خورئ، یاهغه نه هم بدتر،

## د صحابؤ بد ولې شروع شو؟

**اقوال العلماء:**

مرادالکلام ص ۴ کښې عبدالعزیز فرهادی رحمه الله ذکرکوی چه اصل باعث ددې څه وو. نوهغه وائی لماانفرقت دولة المجوسية عن فاس تشاوربعض الشياطين فی افسادالاسلام فاحدثوا القول بان الصحابة ظلمواهل البيت. دائې ځکه کول چه خلق صحابه ؤ نه بدول کړی، چونکه صحابه ددین ستنې وې، سندوو، نودوی چه بدنام شو، نودین هم بدنام شو، ځکه چه دین هغوی راوړې ده، امام مجدد رحمه الله هم مکتبوبات ص ۳۳۰ مطبوعه ترک کښې دفتردوم کښې وائی اګرعثمان وصدیق وفاروق مطعون باشد، ومتروک العدالة شود، برقران چه اعتمادباند،

دارنګه صفحه ۷۷ کښې وائی. ,,کسے طعن براصحاب وسلف صالحین کردرافضی است. امام ابوحنیفه رحمه الله هم سلفونه وو.

دارنګه صفحه ۳۰۸ کښې وائی، محاربات صحابه محمول برمحامل نیک هستند، اوصفحه ۱۸۹ کښې وائی ماامن برسول من لم یوقر اصحابه. صفحه ۸۴ کښې وائی اګراصحاب مطعون شد، دین هم مطعود میشود. صفحه ۸۰ کښې وائی هم اصحاب راجزته نیکی یادنه بایدکردند، دصحابه ؤبدبه نه وایئ. ایمان کامل یامرام الکلام صفحه ۸۰ کښې عبدالعزیزفرهادی رحمه الله ذکرکوی.

جنګهارکاندرصحابه شدپدید — ازقضائے حضرت رب المجید
یادنه اوردنش اولی تراست — یاداوکردن جرام وممنکراست

دارنگه شیخ الاسلام علامه ابن تیمة مجموعة الفتاوی ص ۱۵۳ ج۳ کښې وائی من طعن فی احدمن الخلفاء الاربعة فهواضل من حماراهله، دارنگه شرح العقیدة الطحاویة ص ۵۲۸ کښې وائی ونبغض من یبغضهم وبغیرالخیریذکرهم ولانذکرهم الابخیر.

دارنگه قرطبی ص ۳۰۸ ج۱ الابانه ۹۶ کښې وائی کل الصحابة ائمة مؤمونون غیرمتهمین فی الدین.... علی جمیعهم وتابدنابنوقیرهم وتعظیمهم والتبری من کل من ینتقص احدامنهم والکف عن البطن فیهم والثناء علیهم کماثنی الله علیهم ،،

دارنگه ابوالمنتهی ص ۲۷ کښې وائی:ولا نذکر احداً من الاصحاب الا بخیر، وفی الکفایة ص۴۹ کل من من انقض اهدامن اصحاب رسول الله فهوزندیق. لان عدالة الصحابة معلومة بتعدیل الله الیم. وفی المسامرة ص ۳۱۳ واعتقاداهل السنة والجماعت تزکیة الصحابة ،،

دارنگه الابانه صفحه ۹۵ کښې وائی. وماجری بین علی وزبیر کان علی تاویل واجتهاد. بعضې خلق وائی چه تاریخ لیکلی دی، نوځکه مونږوایولکه البدایه لیکلی فلانی لیکلی دی فلانی لیکلی دی. نوزه وایم چه دوی وائی، چه تاریخ لیکلی دی ځکه ماولیکل نوزه که ستاته کنځل وکړم، خفه کیږې خوبه نه. ځکه چه ستاته فلانی هم کړې دی.اوبیاګوره یوطرف ته تاریخ بل طرف ته دصحابی عظمت، لږه موازنه ئې اوکړه

| | |
|---|---|
| نیست مدح ایشان بجزمدح رسول<br>طعنه برایشان طعنه برپیغمبراست | طعنه برایشان خصلت مردجهول<br>انچه ګفته شاعرګوئم دراست |

اوکه ته وائې تاریخ لیکلی دی نوزه هم وایم.

نیست جزافسانه تاریخ وطن      انچنین تاریخ رادراتش فګن

اوکه مؤرخ لیکلی دی نودیته ئې لیکلی دی، چه تاته به ښائی چه فلانی داوئیلې دی،هغه دصحابه ؤبدنامول مورخ خولیکلی، خودا مقصد

ئې نه دي، لکه قران موسی باره کښې دفرعون قول ذکرکوی، چه هغه وئیل، انی لاظنک یموسی مسحورا نوته به وائې چه قران وائیلی دی چه موسی جادوګر، نه بلکه دادفرعون قول نقل کوی، چه هغه داوائیلی دی. دارنګه زه یوتن دوه نه یادوم، بلکه هرڅوک چه دصحابی بدوائی، هغه رافضی ده، که هغه شیعه ده، که مودودی ده، اوکه غیرمقلد. غیرمقلدین هم دصحابه ؤتنقیص کوی، کتاب کښې ئې لیکلی دی، چه بس دی نه هیڅوک نه دی خلاص. دائې کتاب کښې لیکلی دی، خودائې مرګرې ده. اوعبدالله بن مسعود رضی الله عنه باره کښې وائی. چه لنډوو، داسې وو، داسې وو. مودودی صاحب هم خلافت و ملوکیت صفحه ۹۰ کښې وائی: ,,حضرت علی رضی الله عنه کولوگون نے کهاکه آپ بهی حضرت معاویه رضی الله عنه کی طرح بیت المال کامنه کهول دے،، یعنی مطلب داچه هغه کهلاؤکړې وو. صفحه ۱۲۵ کښې وائی چه هغه مطلب دادې چه معاویه باغی اوبدنظمه وو.

,,اس نے بدرجهازیاده غیرآئینی طرزعمل دوسرے فریق یعنی حضرت معاویه رضی الله عنه کاتها. جومعاویه بن سفیان کی حیثیت سے نهین، بلکه شام کے گورنرکی حیثیت سے حضرت عثمان رضی الله عنه کابدله لینے کے لئے تها. مرکزی حکومت کی اطاعت سے انکارکیا،، نوچه مرکزی أمیراطاعت نه أنکار وکړی نوباغی ده کنه. اوبیاوائی. یه سب کچهـ دوراسلام کے نظامی حکومت کے بجائے زمانه قبل اسلام کے قبائلی بدنظمی کے اتباع هے.

دارنګه معاویه رضی الله عنه باره کښې وائی چه خلافت ئې په ملوکیت بدل کړو. صفحه ۱۴۸ کښې وائی. دطمعې اوډ ویرې نه یزید خپل ځوئ دپاره ئې خلقونه بیعت واخستو، ص۱۵۸ کښې وائی: چه خلافت حاصلولودپاره ئې جنګ وکړو. صفحه ۱۸۳ کښې وائی حضرت معاویه رضی الله عنه سنت بدل کړو. صفحه ۱۷۴کښې وائی چه دکتاب الله اوسنت ئې صریح خلاف ورزی وکړه. صفحه ۱۷۵ کښې وائی چه دپلارپه زناء ئې شهادتونه واخستل.

دارنګه یویوصحابی پسې بدوائی اوداسې داسې الفاظ ذکرکوی. حضرت عثمان رضی الله عنه باره کښې وائی چه معیارمطلوب ئې قائم نه کړو اود

بیت المال نه ئې خپلو خپلوانوته تحفې ورکړې. اوتقسیم ئې کړو. اورشته دارانوله ئې عهدې ورکړې. صفحه ۹۹ نه ۱۰۲ کښې وائی. اودااعتراض په حضرت عثمان رضی اللہ عنہ باندې شیعه ؤکړې وو. لکه السیف المسلول صفحه ۳۳۲ کښې قاضی ثناء الله پانی پتی رحمۃ اللہ علیہ دشیعه ؤاعتراض نقل کوی، اودهغې جواب کوی.

دارنګه مختصرتحفه اثناعشریه صفحه ۲۷۲ کښې دشیعه ؤاعتراض ذکرکوی اوجواب کوی. دارنګه المنتقی دامام ذهبی صفحه ۳۷۸ کښې الصواعق المحرقه صفحه ۱۱۳ کښې لابن الحجرالهیثمی رحمۃ اللہ علیہ دارنګه العواصم کښې ابن عربی رحمۃ اللہ علیہ ترې نه جواب کوی. مودودی په دې خفه شوې ده، چه دوی جوابونه کوی. نووائی چه ماهغوی خبره پریخوده. اوهغه جوابونه م ونه کړل، نوصفحه ۳۴۸ کښې وائی چه دامـاولې ذکرنه کړل، داځکه چه هغوی خپل کتابونه دتاریخ په حیثیت نه دی لیکلې.

بلکه هغوی ځان نه دصحابه ؤوکیلان جوړکړی دی. اووکیل خوخامخاځان نه صفائی کوی ددی وجې نه. مونږوایوټهیک ده کنه. خوبه علی رضی اللہ عنہ هم اعتراضونه شوی دی، نوچه کله هغه ذکرکړی، بیاجوابونه کوی، اوبیاصفحه ۱۱۷ کښې وائی. انهون نے ایک طویل فرض مرتب کی، جن کی جوابات ممکن تهی اوبعدمین دی گئی. دحضرت علی رضی اللہ عنہ باره کښې وائی نودحضرت عثمان رضی اللہ عنہ باره کښې داولې نه وائی.

هم نے چهپایالاکهہ محبت نه چپ سکی
انکهون نے روکه یارسے اظهارکردیا

دمودودی دې ځائې کښې شیعه ؤسره محبت ښکاره شو، حالانکه دعثمان رضی اللہ عنہ داعتراضاتوجوابونه هم کیږی، لکه تاریخ الطبرانی صفحه ۱۴۵ کښې وائی، چه عثمان دورکښې ۳۳ عهدې وې، اوهغه کښې ۱۸ عهدې دعمر رضی اللہ عنہ دزمانې وې. نوبیاڅنګه دخپلوانوله عهدې ورکړې.

دارنګه چه مال ئې ورکړې وو. نوتاریخ طبرای صفحه ۱۰۲، ۱۰۳

جلد ۵ وګوره، عثمان رضی الله عنه وائی ولااستحل اموال المسلمین لنفسی ولاحد من الناس. اودا زماخپل مال دي هغه ورکوم، اودام ابوبکراوعمرزمانه هم ورکول، يوکال دامدرسه نوي جوړيده، دافغانستان انقلاب نوي راغلي وو، يوڅوملايان دلته راغلی وو، يوحسين اخونزاده، چه وروسته ئي ورته شيخ جميل الرحمن وي، الله دي وبخی، دشيخ رحمة الله عليه شاګردان وو. دمودودی په سرئي بحث کولو، اوهغه وخت ئي خپل تنظيم نه ووجوړکړي، نوشيخ ورته دمودودی يوه يوه خبره ښائيله اوجوابونه ئي کول، شپه ترنيمه شوه، اويوه خبره دحضرت عثمان رضی الله عنه مال ورکولوالزام، جواب پاتي شو، اواوده شول. نوشيخ رحمة الله عليه څه يوه ګهنته بعدکتابونه لاس کښې راخيستی، اوراغلوهغوی بيدارکړو، الخ. (شيخ رحمة الله عليه ورته وي چه زه اوده شوم نوسوچ مي کولو، چه که صبامړشوي نوالله به درنه تپوس کوی چه دصحابی په سربحث شروع شو، اوتاخوبونه کول نوراپاسيدم. (تمت بحمدالله)

## ۱۳: ديارلسمه وجه: بيعته رسول صلی الله علیه وسلم بيعة الله

يعنی بيعت درسول بيعت دالله تعالی دي. دادليل دي پدي چه دي حق رسول دي. الله تعالی فرمائی.

,, ان الذين يبايعونک انمايبايعون الله يدالله فوق ايديهم ،، (فتح ۱۰)

يقيناً چه هغه کسان چه بيعت کوی ستاسره نويقيناً بيعت کوی دوی دالله سره، لاس دالله تعالی ددوی دلاسونودپاسه دي.

## ۱۴: څوارلسمه وجه: توصيف اصحابه ومدحهم وشنائهم

يعنی قران کريم کښې الله تعالی دصحابه کرامورضوان الله عليهم اجمعين شان، صفت اومدح بيان کړي ده، دادنبی کريم صلی الله علیه وسلم په صدق باندي دليل داسې جوړيږی چه دايوعقلی اوعرفی ملازمه ده چه عظمت دملګرواوتابعدارانودلالت کوی په عظمت دمتبوع باندي يعنی چه تابعين ئي داسې پاک اونيک خلق دی نومتبوع به خامخانيک صالح اوصادق وی.

قران کریم کښې هم دې ملازمې ته اشاره ده. الله تعالی فرمائی.
والشعراء يتبعهم الغاؤن. ځکه چه دشاعرانوتابعداران ګمراه خلق وی، دلته داشان نه دی وئیلی، چه والشعراء هم الغاون ځکه چه ګمراه دتابعدارانودلالت کوی په ګمراهئ دمتبوع باندې نودارنګه هدایت اوعظمت دتابعدارو دلالت کوی په عظمت اوصدق دمتبوع باندې چه هغه دلته رسول الله ﷺ دې.

دارنګه داعرفی ملازمه هم ده ځکه چه عرف دادې چه ان ا لقرين بالمقارن يقتدى ملګرې دملګری اقتداء کوی،

دارنګه الاعتبار بالامثال من صنعة الرجال. یعنی د امثالونه عبرت اغستلې کیږی، ددې ملازمې تائید دشپږمې صدئ یوعالم ابوالفضل قاضی عیاض اندلسی رحمه الله په خپل کتاب الشفاء باحوال المصطفی (۲: ۴۱) کښې کړې دې، هغه فرمائی:
من توقيره وبره صلى الله عليه وسلم توقيراصحابه وبرهم ومعرفة حقهم والاقتداء بهم وحسن الثناء عليهم والاستغفارلهم والامساک عماشجربينهم.
یعنی دنبی ﷺ عزت اوعظمت داهم دې چه دصحابورضی الله عنهم عزت اوکړی اواحسان ورسره اوکړی اودهغوی حقوق اوپیژنی، اوپه هغوی پسې اقتداء کول اودهغې تعریف اومدح کول اودهغوی دپاره دمغفرت دعاګانې غوښتل اودهغوی داختلافات فیمابینهم نه سکوت اختیاول.

قران کریم کښې چه کوم ایتونه دصحابه کرامو رضی الله عنهم په عظمتِ شان دلالت کوی، هغه درې قسمه دی.

۱: **یوقسم** هغه ایتونه دی چه په هغې کښې تصریح وی چه دادصحابه کرامو په شان کښې نازل شوی دی لکه بعضو کښې تصریح وی چه دا د انصارو صفات دی اوداد مهاجرین صحابو صفات دی، داقسم ایتونه خو یقیناً دصحابو په باره کښې دی.

لکه الله تعالی فرمائی.

,, مُّحَمَّدٌ رَّسُولُ ٱللَّهِ ۚ وَٱلَّذِينَ مَعَهُۥٓ أَشِدَّآءُ عَلَى ٱلْكُفَّارِ رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ ،،

(الآية، سورة فتح: ۲۶)

محمدرسول دالله دې، اوهغه کسان چه دده تابعداردی (صحابه) سخت دی په مقابله دکافرانوکښې رحم کونکی دی په مینځ خپل کښې.

لقدرضی الله عن المؤمنین اذیبایعونک تحت الشجرة. (فتح ۱۸)

یقیناً رضاشوې دې الله تعالی دمومنانو(صحابو) نه کوم وخت چه بیعت کوودوی تاسره لاندې داونې نه.

ددې نه علاوه نورهم ډیرایتونه دی چه تتبع سره ملاویږی.

۲: دویم قسم هغه ایتونه دی چه هغې کښې داتصریح نه وی چه دادصحابه کراموپه شان کښې دی خومفسرینودالیکلی وی چه دادفلانی صحابی اودادفلانی صحابی باره کښې نازل شوې دې یعنی دویم قسم هغه ایتونه دی چه مفسرینوتصریح کړې وی په دې باندې چه دادصحابوپه شان کښې نازل شوی دی لکه ا لله تعالی فرمائی.

,, وَمَن يُطِعِ ٱللَّهَ وَٱلرَّسُولَ فَأُو۟لَٰٓئِكَ مَعَ ٱلَّذِينَ أَنْعَمَ ٱللَّهُ عَلَيْهِم مِّنَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ وَٱلصِّدِّيقِينَ وَٱلشُّهَدَآءِ وَٱلصَّٰلِحِينَ ۚ وَحَسُنَ أُو۟لَٰٓئِكَ رَفِيقًا ﴿٦٩﴾ ،،

(الآیه، نسآء: ۶۹)

اوچاچه فرمانبرداری اوکړه دالله تعالی اودرسول پس دغه خلق به ملګری وی دهغه کسانوسره چه انعام کړې دې الله په هغوی باندې چه پیغمبران دی، اوزیات رشتینی دی اوشهیدان اونیکان دی اوخهٔ دی دوئ په ملګرتیاکښې.

ومالاحدعنده من نعمة تجزی الا ابتغاء وجه ربه الاعلی ولسوف یرضی. (واللیل ۱۹، ۲۰، ۲۱) اونشته هیچالره دهغه سره څه احسان چه بدله ئې ورکړی مګرلټول دمخ درب خپل چه اوچت دې اوزردې چه خوشحاله به شی.

دې دوو ایتونو باره کښې تفسیر قرطبي کښې تصریح ده چه دا د صحابه کرامو باره کښې دی. دارنګه د دې نه علاوه نور هم ډیر ایتونه دی چه تتبع سره معلومیږی.

۳: **دریم قسم** هغه ایتونه دی چه په هغې کښې تصریح نه وی دا د صحابه کرامو باره کښې دی خو هغه صفات وی د مومنین کاملین نو د هغې مصداق اول صحابه کرام دی، نو دا آیاتونه په دې طریقه باندې د صحابو صفات وی لکه الله تعالی فرمائی.

„ هُدًى لِّلْمُتَّقِينَ ۝٢ ٱلَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِٱلْغَيْبِ وَيُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ وَمِمَّا رَزَقْنَٰهُمْ يُنفِقُونَ ۝٣ „ (سورة بقره ۳)

لار (د تقوی) خائی پرهیزګارانو ته، دا هغه کسان دی چه یقین کوی په هغه څه چه د دوی نه پټ دی. او پابندی کوی د مانځه او بعضې د هغې نه چه مونږ دوئ له ورکړی دی خرچ کوی په لاره د الله تعالی کښې.

„ وَعِبَادُ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلَّذِينَ يَمْشُونَ عَلَى ٱلْأَرْضِ هَوْنًا وَإِذَا خَاطَبَهُمُ ٱلْجَٰهِلُونَ قَالُوا۟ سَلَٰمًا ۝٦٣ „ (سورهٔ فرقان)

او خاص بندګان د رحمن هغه خلق دی چه ګرځی په زمکه باندې په نرمئ سره او هر کله چه خبرې کوی د دوی سره جاهلان، نو دوی ورته وائی د سلامتیا سره.

د دې نه علاوه نور هم ډیر ایتونه دی چه تتبع سره معلومیږی.

دې ایتونو کښې چه د صحابه کرامو اوصاف بیان شوی دی دا قطعی او یقینی دی، د قران کریم په مقابله کښې بظاهر یو حدیث راشی نو هم په هغې کښې تاویل کیږی نو دبل چا قول ته د قران په مقابله کښې څه اعتبار دې چه هغه د صحابه کرامو په مینځ کښې دشمنی ثابتوی، یا صحابو باندې طعن کوی لکه قاضی عیاض رحمة الله علیه په خپل کتاب الشفاء (۲: ۴۱) کښې فرمائی.

والاضراب عن اخبارالمؤرخين وجهلة المؤرخين وضلال الشيعة والمبتدعين القادحة فى احدمنهم. (الشفاء ص۲! ٤۱)

اومخ اړول دی داخبارودمؤرخينونه اوناپوهه مورخينونه اودګمراه شيعه ګانونه اودمبتدعينونه چه جرح کونکی دی په يوتن کښې ددې صحابونه.

يعنی دصحابوباره کښې چه جاهل مورخين اوګمراه شيعه ګانو او نوروبدعتيانوڅه دنقص اوطعن اخبارنقل کړی دی دهغې نه اعراض کول په مسلمانانوباندې فرض دی، دقران مقابله کښې ددوئ خبروته هيڅ اعتبارنشته.

پدې مقام کښې اکثرومورخينوتاريخ په تاريک کښې ليکلې دی يعنی دروغ ئې ليکلی دی، دشيعه ګانوخبرې ئې نقل کړی دی بعضې خبرې اواختلافات دصحابوپه مينځ کښې واقعةً پيداشوی دی خوهغې کښې هم کوم جانب نه چه غلطی شوې ده هغه اجتهادی غلطی وه په هغې باندې مواخذه نه شی کيدې، لکه شرح فقه اکبر(۴۸ و ۸۲) کښې، دارنګه مرقات (۱۱ ؛ ۲۸۰) کښې ملاعلی قاری رحمۃ اللہ علیہ داتصريح کړې ده چه دصحابودا اختلاف بناء ووپه خطاء اجتهادی باندې، ددغه اختلافاتوباره کښې هم دااهل السنه والجماعت عقيده په شرح فقه اکبر(۸۵) کښې اوشفاء دقاضی عياض (۲ ؛۴۱) کښې ذکره ده چه: الامساک عماشجربينهم.

دارنګه امام شافعی رحمۃ اللہ علیہ ته چااووئيل چه دصحابومينځ کښې چه کوم اختلاف وودهغې باره کښې مونږته څه اووايه هغه ورته اوفرمائيل. تلک امة قدخلت لهاماکسبت ولکم ماکسبتم. اوبيائې اووئيل چه الله تعالی زمونږ لاسونه اوتورې دهغوئ دوينونه ساتلی دی نوخپلې ژبې څنګه دهغوی په بې عزتئ کښې ککړې کړو.

**سوال:** - بعضې خلق دڅه رواياتونه استدلال کوی اودصحابه کرامو تنقيص کوی لکه دمشکات يوحديث دې چه دخلافت زمانه ديرش کاله ده، دينه استدلال وی چه معلومه شوه چه معاويه رضی اللہ عنہ خليفه نه وو بلکه ملک يعنی

بادشاه وو.

**جواب:** جواب دادې چه امام ابن العربی رحمه الله په العواصم والقواصم کښې لیکلی دی چه داحدیث سنداً ضعیف دې، ددې په مقابله کښې صحیح حدیث شته، بخاری کښې روایت دې نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائی. چه زمانه به روسته (١٢) خلفاء وی، دارنګه شرح العقیده الطحاویه (٢٠٠) کښې هم شته چه معاویه خلیفة لیس بملک، دمعاویه رضی الله عنه فضیلت کښې مرقات(١١ ؛ ۴۳۸) کښې یوحدیث نقل کړې دې.

اللهم اجعله هادیاً مهدیاً واهدیه. اې الله دا(معاویه) اوګرځوې لاره ښوونکې اولارورته ښوول شوې اوهدایت اوکړې په ده سره(خلقوته)

کله بعضې اهل علم خطاء شی هغه داسې چه یوحدیث کښې دعمار رضی الله عنه باره کښې راغلی وو. تقتله الفئة الباغية. یعنی نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه عمار رضی الله عنه لره به باغیان وژنی نوخلقودې حدیث سره یوبله خبره اولګوله چه عمار رضی الله عنه دعلی رضی الله عنه فوج کښې وو اودمعاویه رضی الله عنه ملګروقتل کړو نو معلومه شوه چه دمعاویه رضی الله عنه ډله فئه باغیه وه.

بعضې فقهاء هم دې کښې خطاشول اومورخین هم خطاشول په اهل السنه کښې، چه اوداخبره صحیح ده بغی نه مراددلته بغاوت عن حدودالله نه دې بلکه دعلی رضی الله عنه دامارت نه بغاوت مراددې.

مونږ **جواب** کووچه داحدیث اګرچه محدثینوذکر کړې دې لیکن ددې په سند کښې یوراوی عبدالله بن جعفرنجیح دده باره کښې الکامل لابن عدی (۴ ؛ ۱۴۹۵) کښې وئیلی دی، چه داراوی ضعیف دې، اودار وایت ضعیف دې.

**دویم جواب** دادې چه داتاریخی خبره ده چه عمار رضی الله عنه دعلی رضی الله عنه په لښکر کښې وونوتاریخ داهم لیکلی دی چه عمار رضی الله عنه دعثمان رضی الله عنه په دورکښې مصرنه رااووتلواوورک شو. سبائیووژلې دې نوفئه باغیه سبائیه دی، اویقیناً سبائیه فرقه باغیه وه، لکه چه قران کریم دصحابوشان بیان

کړي دي. دارنګه جناب محمد رسول الله ﷺ په ډيرو احاديثو کښې دصحابو شان بيان کړي دي ومن اراد التفصيل فليراجع الى كتب الاحاديث.

معلومه شوه چه دصحابو شان دا ديني مسئله ده تاريخي مسئله نه ده نودې کښې به صرف قران او حديث ته اعتبار وي ددې په مقابله کښې تاريخ (تاريک) ته هيڅ اعتبار نشته، دصحابه کرامو دا عظمتِ شان په حقيقت کښې دلالت کوي په عظمت دشان درسول الله ﷺ او دهغه په صدق باندې.

حضرت مولانا ولی الله صاحب کابلگرام
په قرة العيون ص۷ کښې فرمائي

دا صحابانو رضی الله عنهم مقام — په درلیشق کالو دنبوت کښې نبي علیه السلام ډير اعلىٰ او اوچت مقام کاملان شاګردان پيدا کړيدي دهر قسم داغ نه پاک دي خطايانے ترنه شويدي ليکن په اجتهاد يعنې دخپل عمل به ورسره دليل وو خو په دليل کښې به خطا شوخو سره د دينه ئے الله تعالىٰ د بخنے اعلان کړيدے رضی الله عنهم ورضوا عنه، تنقيد،، په صحابه وُ رضی الله عنهم اعتراض کول دهغو غلطيانے خرګندول ډيره لويه غلطي او ګناه دے دهغو سره محبت کول او دهغو تعظيم کول او صفتونه ئے کول ايمان دے دهغو بې ادبي کول دنبي علیه السلام بے ادبي ده او دهغو تعظيم کول دنبي علیه السلام تعظيم دے هر بنده دِ خيال اوکي چه څه به دپيغمبر علیه السلام سره صباح مخ لګوم او دهغه په دخپلو شاګردانو طرفدارۍ نو څه به ځه جواب کوم الله تعالىٰ دهر ايماندار له دهغو محبت او تعظيم نصيب کي.